


رابندرناتهـ ټاگور

# گیتآنجلی

پښتو منظومه ژباړه
محمدصدیق پسرلی

د آزاد افغانستان د ليکوالو ټولنې
د جوړيدو د لسمې کاليزې په وياړ
۱۳٦٤ - ۱۳۷٤ هـ ش




# ګيتاآنجلي

د

## رابندرناته ټاګور

پښتو منظومه ژباړه

د

محمد صديق پسرلي

۱۳۷۳



## د کتاب پیژندنه

د کتاب نوم : گیتانجلی

ویونکی : رابندر ناتهـ ټاگور

ژباړن : محمد صدیق پسرلی

خپرونکی : د آزاد افغانستان د لیکوالو اتحادیه د وفا جریده

د وفا جریدې د خپرونو

پرله‌پسې نومره : ۳

د چاپ کال : ۱۳۷۳ حوت / ۱۹۹۵ مارچ

د چاپ ځای : تاپ پرنټرز - پېښور

کمپوزر سید حسین پاچا

بسم الله الرحمن الرحیم

# سریزه

ډیر کلونه پخوا هغه وخت چې نوی د لوستلو او لیکلو شوق راته پیدا شوی و او د زړه په زور به مې په کابل مجله کې یو نیم شعر یا ادبي ټوټه لوستلای شوای زه د ټاګور له نوم سره اشنا شوی وم او د ده د ګیتانجلي د ځینو شعرونو ترجمو به مې په ذهن او زړه کې د ده لپاره خاص ځای غوښت ، که څه هم تراوسه د ټاګور د فلسفي شعر په کیفیت سنه نه پوهیږم هغه وخت مې ترنن هم سویه ټیټه وه خو د ټاګور شعر لکه پخه میوه داسې ده چې ماشومان یې د خوند لپاره خوري پرته له دې چې په طبي ګټو یې پوه شي خو پوهان یې هم په ګټه پوهیږي هم په خوند .

د ټاګور په شعر کې یو ډېر خاص خوند پروت دی چې سبودل یې خوله، ژبه او علم غواړي . زما مینه د هند د دې لوی مفکر او ستر شاعر له کلام سره صرف د هغه خوند له امله وه چې لسز ډیر زما ماشوم طبیعت ورڅخه اخیستلای شو خو په ګټه یې نه پوهیدم .

څو کاله وروسته یو وخت د محترم بینوا صاحب په قلم د ګیتاانجلی د څو پارچو ترجمه لاس ته راغله ( هغه وخت چې لا مکمله ترجمه نه وه چاپ شوې ) ما له هغو څخه یو دوه ټوټې نظم کړې چې په کال ۱۳۳۵ کې د پښتون ږغ په مجله کې خپرې شوې .

بیا ډیرې وختې راغلې لاړې چې نه یې کومه مکمله نسخه په لاس راغله نه یې له ما سره د نظمولو مفکوره وه . څو چې په کال ۱۳۵٤ د کب د میاشتې په وروستۍ لسیزه کې د ښاغلی روان فرهادی له خوا په دري نظم او نثر د ګیتاانجلی ترجمه چا راوړه د هغه اثر لیدو او لوستلو بیا وپارولم له سنه مرغه د بینوا صاحب ترجمه هم په لاس راغلې وه ، د دواړو په پرتله کولو بوخت شوم او د ټاګور مطلب به مې په هر شعر کې له دواړو څخه اخیست . د نظم لپاره مې د بینوا صاحب ترجمه چې مکمله په نظر راغله غوره کړه ، البته په ځینو مطالبو د روان فرهادي کتاب سم پوهولم هغه . و چې تر پنځه پنځوسمې ټوټې مې له یو دوو ټوټو پرته له یوه سره نظم کړې پاته له څه لنډې وقفې وروسته چاپ شوې او بیا نظم شوې دي ، په چاپ کولو کې صرف دا معیار و چې باید هغه شعرونه نظم شي چې اقلاً یو څه خو زمونږ له ذهن او ادبیاتو سره توافق ولري نورې منظومې رانه پاته شوې . نورې ټوټې یې چې ډېر زیات د هندي فلسفو رنګ منلی و. زمونږ لپاره یې شعري کیفیت نه درلود ځکه چې هرقوم او هرملت بیل کلچر بیل معتقدات او بیل ادب لري ، دغه څه چې ترجمه شوي دي هم البته زمونږ له ادبیاتو سره ډېر

مغایرت لري خو بیا هم مونږ ته پکښې یوه اندازه ادبي کیف حاصلیږي نه هغومره چې یوهٔ بنګالي هندو ته حاصلیدای شي . خو د پاته ترانو نظمول راته بیخي اضافي کار ښکاره شو ، یا به یې زه په خوند نه پوهیدم یا به ممکن زمونږ لپاره نامفهوم غونډې اشعار وو .

په هرحال په ډیرو لیوني خوشالیږي ، که دا ترجمې د خلکو خوښې شوې په ګوشته کې نور ځوانان هم شته ، نور ځوانان به یې تکمیل کړي .

په درناوی

پسرلی



بیکران او لا محدود چې دې پیدا کړم
دغه شان به ای باداره ستا رضا وه !
په وارو ، وارو زما د بدن لوښی
ړکوې او تشوې د ژوند له تاوه
*** *** ***

چې په غرونو ، په رغونو باندې گرځې
دا وړه غوندې شپیلی هم درسره وې
هره سا پکې یوه بله نغمه پوه کړې
شامدام دې نوی ساز – نوې نغمه وې
*** *** ***

جاویدان لاس چې راتیر زما په زړه کړې
زما زړه یې له مبنوده گلستان شي
د حدودو پنجرې ماتې کړې زغیزې
په ها ژبه چې عاجز ورته بیان شي
*** *** ***

زمانو ولیدل ستا ډیر نعمتونه
چې زما وړو لاسونو کې رالویږې
آیا نور هم څه لا دم کنې باداره ؟!
یا د نورې سمسورتیا ځای درښکاریږي ؟

## ۲

اجازه چې د سندرې ماته راکړې
زما زړهٔ شي له ډېر وياړه ډېرې وړې
تاته وګورم ليمې مې شي راډکې
روڼې اوښکې مې رپ رپ په باڼو رغړي

* * *     * * *     * * *

هغه څه چې د ورېځ وړ وو په ژوندون کې
د خوږې سندرې رنګ واخلي عيان شي
زما ځانځنه د يوهٔ ښاد مـرغه په شان کړې
کـوم چې پاس پر سمندر وزر افشان شي

* * *     * * *     * * *

ته زمـا په دې سندرو خوشحاليږې
چې سندرې درته وايم بنه پوهيږم
زه يـوازې پـه عنوان د سندر غاړې
ستا حضور ته نژدې کيږم او قبليږم
*** *** ***

د سندرو د اوږدو وزرونو خـولهٔ ده
چې ستا سنکلې ، پستې پښې شي سنکلولای
هغه پښې چې تش ديدن يې ناممکن دی
تصور يې د ليدو نشم کولای
*** *** ***

د سندرې خوشحالي مې کړې سرشاره
ځـان مـې هير شي درته ووايمه ياره !
کنه زه څوک يم او ته څوک ؟! زه دې مينځه ،
تهٔ مالك زما د هر څه يې باداره !

## ۳

اې باداره ! اې باداره ! اې باداره !
چې ته ښکه بدل بولې نه پوهیږم ؟
زه یې تل تل په خاموش حیرت کې اورم
پرې خوښیږم ، پرې مستیږم ، پرې نازیږم
*** *** ***

د سندرو ژوندی روح دې ده چې تل تل
پردې مځکو ، آسمانونو باندې ګرځي
چې د ساز دې مقدسې ښپې راشي
دبرین حجاب د غرونو وړې اوغورځي
*** *** ***

زړهٔ مې ستا سره سندره بلل غواړي
خو له تت آوازه ږغ نه اوچتیږي
زه به ښه.ووایم عجز کړوي ما
له ساده ږغه سندرې نه جوړیږي
*** *** ***

آه ، زما زړهٔ دې زما د زړهٔ باداره !
په ښه لومو ، په جالونو کې نیولی ؟
تا د خپلې موسیقي په بیشماره -
خوندورو طنابونو یم تړلی !

## ٤

اې زما د اروا ځانه ! ښه پوهېږم
دا چې ساتم خپل بدن پاك او سپېڅلی
چې ستا لاس زما پر جند باندې تیرېږي
خوږ مننود یې زما ترځان راګرزېدلی
***　　***　　***

زه به زيار باسم چې ټولې ناروا وې
له خپل زړهٔ او له خپل خيال څخه جلا کړم
ښه پوهېږم چې ته هغه حقیقت یې
چې د عقل په انوارو یې رڼا کړم
***　　***　　***

زما زيار او زما هڅه به تل دا وي
چې بدي مې واړه وباسم له خپل زړه،
د تازه او غوړېدلي ګل په څير مې -
مینه وساتم او پالم باندې تل زړه،
***　　***　　***

ته زما د زړهٔ معبد کې یې پوهېږم
په هر کار کې ماته مرسته راکوې ته !
زما هڅه به باداره ! ټوله دا وي :-
چې په هر څه کې جلوه راښکاروې ته



صرف زه دومره لورينه درنه غوارم
چې يو ځل دې اجازت ومومم در ته
بس د ستړګې رپ قدر در سره کښينم
نور کارونه به مې بيا رسوم سر ته
*** *** ***

ناکرار مې د زړګي ذره ذره شی
نه ليدل دې ګوره څه اور په ما بل کړي
زما کار د مشقت د بيکران سين
په بې پايه کړاوونو را بدل کړي
*** *** ***

د ګرمي توده سا بيا احساسومه
د کړکۍ له شا نه مخ راښيئ ماته
او د شاتو مچۍ بيا په تاندو ګلو
سرينديې د محبت زغوي چا ته
*** *** ***

د دې وخت دی چې اوس زه هم ستا ومخ ته
مخامخ کښينم په پټه خوله دلبره !
په کاملې خاموشي درته شروع کړم
د ژوندون د نذرانې غوره سندره



دا کوچنوټی ګل در پرې کړه
کوم چې تاته غوړېدلی
مه ځنډېږه چې زمول نه شي
بیا به خاورو وي لړلی
*** *** ***

دا کوچنوټی ګل درواخله
انتظار ولاړ دی تا ته !
په امیل کې به دې ګوندې
یو څه ځای وي ورته پاته
*** *** ***

کنه ته یې د پاسته لاس
د مبنود په خوږو سناد کړه
د حسرت له پنجرو یې
په خپل لاس باندې آزاد کړه
*** *** ***

هسې نه چې ورځ بیګاه شي
دې نه وراندې چې خبرېږم
باندې تیر د نذر وخت وي
زه بیریږم - زه بیریږم
*** *** ***

زه منم ، په رنګ کچه دی
بوی یې هم دومره تیز نه دی
خو در پرې یې کړه له څانګې
چې د کار وخت یې دغه دی

## ۷

زما ساز او زما نغمو یې
اوچت حُسن ساده کړی
د ښایست له آسمانو یې
دی په ځمکه پیاده کړی

د ده حُسن بې جامو ، او –
بې سینګاره ښایسته دی
پسول د وصل اخلال ګر وي
له ګینو نه وارسته دی

دا پسولونه او ګینې دې
چې په مینځ کې مو دربزي
زما و ستا پټې خبرې
یې په شور کې محو کیږي

ستا په وړاندې مې له شرمه
غرور مات د شاعرۍ شي
ای باچا د شاعرانو !
ژبه تا ته ترټرۍ شي

زه ستا ښنو ته یمه ناسته
اجازه راکړه باداره !
چې له ژوند نه مې کړم جوړه
یوه شپیلۍ د تا د پاره

یوه ساده – سیده شپیلۍ چې
بس د تا په یاد زغیږي
ستا د پاره د یوې ښکلې –
نغمې ساه پکې چلیږي



شاهانه جامې چې واغوندي ماشوم ته

کړي امیل د جواهرو ور په غاړه

ښایسته ، ښکلې جامې کړي ورنه هیري

طفلانه لوبې د دهٔ له زړهٔ نه واړه

*** *** ***

چې هار خپل اخلي د ناز ښکلې جامې یې

په نازکو پښو کې اوړي لکه لومې

د امیل دانې یې واړه څانته څانته

د طفلۍ هوس ته وګرزي پیچومې

*** *** ***

چې وربښمين لباس يې خاورې سپيره نه کړي
گوښې گرزي د طفلانو له ټولي نه
هوسونه يې ور وژني شاهانه پوښ
آرايش يې لرې ساتي له طفلي نه
*** *** ***

نو ، اې مورې ، ای د ښکلي ماشوم مورې
خپل ماشوم په ښکلي پوښ کې ښکيلوه مه
بې گناه بچي دې ای زړهٔ سواندې مورې
له طفلي او له طفلانو بيلوه مه
*** *** ***

دغه خاوره چې جامې ورڅخه ساتې
دغه خاوره دې روغتيا بخښي ماشوم ته
پرېږده ورغړي پر خاوره ، لوبې وکړي
دغه لوبې دې ښکلا بخښي ماشوم ته




ای ناپوهه ، ای ناپوهه !          ای په خپلو اوږو سپوره !
اوس له خپلې دروازې هم          پکر غواړې تمه خوره

خپلې چارې او دندې دې          وسپاره و هغه چا ته
چې ستړیا او تأسف یې          لیمه نه اړوي شا ته

چې د مینې په ساه بله -          ډیوه وژني تمنا ده
آرزوگانې دې کړه لرې          چې آرزو د عشق بلا ده

د هغو ناولو لاسو          له خیراته لاس په سر کړه
ها هدیه موزه په سترگو          چې سپیڅلې مینې درکړه




ستا د پښو لپاره فرش خو — غوړيدلی دلته لنډ وو
مگر تا هلته پل کيښود — چې بيوزلي سره پنډ وو

زړه مې غواړي چې تندی مې — ستا په پښو پورې موښلی
خو زما سر ټيټيدنه — په دې نه شي پوهيدلی

چې ستا گام د اسکيرليو — او بې وزلو خلکو مل دي
په رټلو ، په درويلو — دې خاونده نظر تل دی

غرور نه شي هغه ځای ته — لاره هيڅ وخت موندولای
نه مغرور د دې مطلب په — نازکي شي پوهيدلای

هغه ځای ته چې د خوارو — په جامو او په کالو کې
له بيوزلو سره گرځې — په ميرو او په بانډو کې

زما زړه نه لري لاره — هغه ځای ته چې ته تل يې
د خورا ډيرو بيوزلو — بې پناهو سره مل يې

## ۱۱

د معبد په تیارو کې
ته د چا پرستش غواړې ؟
چې ورهم کړې درېسې پورې ؟
پام دې وي د چا په لورې ؟!

دا تسپې او نغمې څه دي ؟
په دې توره تیاره کې
دغه پرېزده ، څه پرې وباړې ؟!
له تیارو څخه څه غواړې ؟

سترګې وغړوه ، ګوره
که دې خدای غواړې نو وایه
په تیارو کې خو څه نشته
په کوم ځای کې هغه نشته ؟

هلته هم دی ، هغه ځای کې
هم په غرو کې د شپنیانو
چې بزګر په یوې بوخت وي
له خواله سره جوخت وي

هلته هم د هغوی مل دی
د پاسته لاس په تناکو
چې لو لارې جوړوي څوک
پخې تیزې وړوي څوک

له هغو سره دایم وي
په سیلۍ - په ځول - په هروخت
په باران - په باد اوریه کې
آن په تکنده غرمه کې

د هغه کالو ته گوره تل له خاورو نه سپیره وي
له زیارکښنو سره اوسي له غریب سره دیره وي

له عبا او قبا تیر شه پریږده دا د ریا کته
د هغه غونډې په مځکه شه دې خاورو ته راښکته

آزادي غواړې نو واوره آزادي رستگاري ده
له دې تورې تیارې ووزه د غمجنو غمخواري ده

زمونږ بادار په خپله خوښه واخیستې په خپله غاړه
د مخلوق د قطرت ستونزې د خلقت اړیکې واړه

تل له مونږ سره لگیا وي تل یې پام وي زمونږ په لوري
له هر څه یې ښکاري مینه تل په مینه راته گوري

دې بزرگیو ته دې شا کړه پل بهر له حجرې کیږده
دا نذري عود بتۍ مړې کړه د خلوت گټې دې پریږده

څه پروا که دې کالي وي تاپې تاپې اوشلیدلي ؟
اسکیرلې او بیوزلې خو لا ډیر دې پرې منلي

پاڅه پاڅه زحمت خوښ کړه له زیاره سره خپل شه
سر ، تندی دې کړه خولې او – له باداره سره مل شه

## ۱۲

د عمرونو مسافر یم
د آسمان د لوړو وړانګو

په اوزده سفر وتلی
په بګنۍ کې یم راغلی

ډیرې نخښې مې پرې ایښې
آسمانونه مې کڅ کړي

د دې ستورو پر مخونو
په دې ستړو سفرونو

هغه ډیره لیرې لار ده
موندول یې آسان نه دي

چې نژدې تا ته راغلې
هم سیده ده ، هم پیچلې

د خوږې نغمې په خیر ده
په هنر کې رهنما شي

چې له دروي شي راپورته
د سنکاره ساده ګي لور ته

نابلد ټکوي هرځای
لالهاند وي څو چې مومي

ډیر د خپلو ، پردو وروته
د مطلب د حرم خونه

زما لیمې هم ښکته پورته
لالهاندې ګرځېدلې

په هرځه او په هرځای کې
یې بس ته پسې غوښتلې

دې نه مخکې ، دې نه وړاندې
چې لیمې وتړم دواړه

او ناري کړم چې دا ته یې
ای زما په زړه ولاړه

دا پوښتنه : چې دی کوم دی ؟
زما په سترګو کې اوبه شي

هر یو څاڅکی د دې اوښکو
طوفاني غوندې څپه شي

یو مست سیل ورځخه جوړ شي
شک شبهې واړه لاهو کړي

د یقین په ویړ جهان کې
د « دا زه یم » نفس پو کړی

۱۳

ها سندره چې ويلو ته يې راغلم
ده تراوسه نابللې رانه پاته
ورځ مې تيره شوه او ساز مې سر ونه نيو
له بې سوره سازه څه واوروم چاته ؟
*** *** ***

لا تراوسه مې سم وخت نه دی موندلی
ناموزونه دي پراته راته لفظونه
تش يو درد مې د آرزو په زړهٔ کې پروت دی
نور نه ساز شو ، نه سرود شو ، نه شعرونه
*** *** ***

که څه هم غوټۍ لا نه ده غوړېدلې
د هوا له زړهٔ ساړهٔ آهونه خيژي
نه رغيږي ، نه ليد کيږي خو ځړپې يې
ورو ورو اورم چې زمونږ خوا کې تيريږي
*** *** ***

يوه اوږده ورځ مې بيګاه کړه هلو ځلو
چې مې دهٔ ته خپله خونه فرشو له
چې مې دی نشو دننه رابللای
ما تراوسه ډيوه نه ولګوله
*** *** ***

د ليدو په تمه تمه به يې پايم
دا آرزو به مې ترمرګه راسره وي
که څه هم تراوسه نه دی ما ليدلی
د دهٔ خيال به مې د زړهٔ د کور ډيوه وي

## ١٤

وړ د رحم او عطوفت دي　　زما هيلې ، فريادونه
خو د لوی رحم خاونده　　د تا ېل شان دي دادونه

که زه ډير څه درنه غواړم　　ته مې لبز منې غوښتنه
زما ژوند دې ښايسته کړ　　په دې لويه لوريينه

هره ورځ په ما بې غوښتو　　کمې - لوبې عطيې اورې
چې د غوښتو له هجومه　　مې بې غوښتو ضمير ژغورې

دا عطيې دې څه دي ؟ ربه !　　دا آسمان ، مځکه ، دنيا مې
دغه زه ، او زما جند ، او -　　دغه ژوند ، او دغه سا مې

کله داسې شي چې سوځم　　ستا له ډيره انتظاره
کله پاڅيږم له خوبه　　ستا په لټه ناکراره

خو ته ، اې زما باداره !　　کله هم نه ليدل کيږې
بيرحمي نه ده نو څه ده　　چې هروخت رانه پټيږې

ما له ورانو هيلو ژغورې　　ته په خپلو انکارونو
چې د تا د مينې وړ شم　　په سپيڅلو ارمانونو

## ۱۵

د خپل لوی دربار په مینځ کې
چې د تا سندرې بولم
دې زه هم یم کښېنولې
زه دې یمه رابللې

بل کوم کار پاته دی ماته
بې له دې چې وځېږم ژوند
په دنیا کې چې یې وکړم ؟
او ترې جوړه یوه نغمه کړم

نیمه شپه چې مو دربولي
چې ادا کړو په معبد کې
پرستش ته ګړیالونه
د کامل سکوت لمونځونه

نو ای زما باداره ! ماته
په حضور کې دې ولاړه
حکم را ! چې ودې ستا یم
او سندرې درته وایم

هر سحر چې په فضا کې
ما هم بوله چې تا ستا یم
ستا زرین ارغنون سر شي
چې د فخر جام مې پُر شي



# ۱۶

د دنیا په دې لوی جشن – کې ، دا زه هم میلمنه شوم
په دې زیري یې خوشحاله په دې لطف سنه درنه شوم

هم مې ولیدل په سترګو هم مې واوریدل غوږونو
کافي برخه مې حاصل کړه د سیلونو ، د خوندونو

په دې جشن کې زما هم د سازونو وظیفه وه
درست مې وزغول داسې چې له وسه مې پوره وه

آیا اوس هم لا هغه وخت درته نه سنکاري باداره ؟!
چې دننه مې دربولې د وروستي سلام د پاره




زه د مینې لاس ته ګورم — چې خپل ځان ورته تسلیم کړم
خپل تقدیر او دا خپل هرڅه — خپل جهان ورته تسلیم کړم

دا سبب دی چې لا ګورم — په ما دومره شو ناوخته
دا موجب دی چې کړېږم — انتظار راولي سخته

غواړې ما هم کړي پابنده — د دودونو ، رواجونو
خو زه تښتم له دې خلکو — او د دوی له دې دامونو

زه د مینې لاس ته ګورم — چې خپل ځان ورته تسلیم کړم
دا خپل ژوند او د ځان هرڅه — خپل جهان ورته تسلیم کړم

دوی په ما لکوي دا تور    چې زه ډېره بې پروا یم
دوی رښتیا وایي ، رښتیا ده    بې پروا سندرې وایم

ورځ تیریږي او کمیږي    ګڼه ګوڼه له بازاره
یوه مشغول غوندې بشر هم    واخیست لاس له کارو باره

کوم وګړي چې وو هسې    په چټې پلمه راغلي
بیا کورونو ته ستانه شول    ځهریدلي - ځوریدلي

زه د مینې لاس ته ګورم    چې خپل ځان ورته تسلیم کړم
دا خپل ژوند او د ځان هڅه    خپل جهان ورته تسلیم کړم

## ۱۸

توري وريځي سره اوري غرونه غرونه
او تياري يې راخورې کړې رڼا لاړه
خو يوازې بهر ستا له ورهٔ مينه !
دغه يوه زه منتظره يم ولاړه
*** *** ***

ورځ چې ټول په کار لګيا وي زه هم ورشم
په غرمه کې هم يوازې نه يم پاته
خو د دې تورې تيارې په تنهايې کې
د اميد ستړګې بې تا واړوم چا ته ؟!
*** *** ***

که ته ځان راښکاره نه کړې او ما پرېږدې
په دا هسې تنهايې او توره شپه کې
خدايزده څنګه به شي تيرې نه پوهيږم
دا اوږدې ګړۍ په ما په باد اوريه کې ؟
*** *** ***

زه آسمان او شاوخوا ته څير څير ګورم
چې تيارې يې دم په دم اضافه کيږي
زړهٔ مې باد په مخه کړی دی روان دی
له سيليو سره ژاړي او چغيږي

## ۱۹

که ته ما سره خبرو ته جوړ نه شوې
زه به ستا له خاموشیو زړهٔ ودان کړم
لکه توره شپه د ستورو له لیمو نه
انتظار به دې په صبر چراغان کړم
*** *** ***

زه به ستا چوپوالی وزغمم په صبر
پته خوله به دې په یاد یمه ولاړه
ستا سکوت به مې د خپل سکوت امسا کړم
انتظار به دې لرم په کږه غاړه
*** *** ***

ورځ هرومرو راتلونکې ده راځي به
د تیارې لمن به خامخا ټولیږي
ستا آواز به آسمانو نه یوه ورځ چوي
ترې د سرو زرو چینې به را خوټیږي
*** *** ***

هغه وخت به ستا خبرې زما له ځالې
د نغمو په توګه والوزې مرغۍ شي
او د تا نغمې به زما د بیدیا خوا ته
شوندې پرانیزي ، د ګل غوندې مسکۍ شي

## ۲۰

هغه ورځ چې نیلوفر په غوړیدو .و
دریغه زړهٔ مې رانه ورك او آواره و
توکری تشه وه زما ، گل غوړیدلي
خو د هیچا ورته پام او فکر نه و
*** *** ***

بس یو غم و چې یې لاس رانه چاپیر کړ
چې ناڅاپه یې له خوبه پاڅولم
د سهیل له خوا عجیبه وږمه راغله
چې خوازه پیام یې ډیره ښادولم
*** *** ***

د هغې د آواره پیام خوږوالي
د آرزو ځریکې راوبخښلې ماته
راښکاره شوه ، په تکمیل پسې وتلې -
د پسرلي د هیلو ډکه سا صحرا ته
*** *** ***

ها له نه پوهیدم زه چې دی به ماته
دومره ډیر وي رانژدې لکه زه ځانته
دغه ښشپړه خوږلت مې د زړهٔ تل کې
اوس غوړیږي چې مې وکتل جانان ته

## ۲۱

اوس یې وخت دی چې بیړۍ مې کړم روانه
خوشی وخت را باندې تیر شو په ولاړه
چې بې کاره وخت مې تیر کړ ډیر افسوس دی
اوس مې فرصت لاړ د سین په غاړه
***     ***     ***

پسرلي گل وغوړاوه ، تیر شو او زهٔ لا
منتظرْ یم د مراوو گلو څانگه
مست بادونه چې چلیږی ښندي هر لور
زیړې پاڼې ، د ساحل د ونو پانگه
***     ***     ***

ولې هسې په حیرت کې یې ولاړه ؟!
آیا نه اورې هغه خوږې سندرې ؟!
ها نغمې چې د امواجو غوندې یوه یوه
سا وهلې شان راځي له لرې لرې ؟
*** *** ***

د هغو نغمو له ریږد سره ملګه نه شوې
چې د سین له هغې غاړې اوچتیږي
ایا نه محسوسوې هغه ورځه ته –
چې له دې ښکلو سندرو را لټیږي ؟!
*** *** ***

هغه ستا د دلدار زغ دی چې تا بولي
ناامیده نشې ځان ورته چمتو کړه
تا وربولي ، ها خوا تاته انتظار دی
دا وره بیړۍ موجونو کې لاهو کړه

## ۲۲

جولايي ده باران اوري
خو د گڼ ځنگله په سيوري
خو کيدارو ته نه سنکاري
له نکاه يې پاني ژغوري

پسته اور دی ، پسته اور دی
زغ يې نه اوريدل کيږي
د تورات غوندي په پټه -
خوله، ورو ، ورو رانازليږي

ننني کيږغ لا نه دي
پټې سترگې غوروليې
ناخبر دی چې سيلۍ نن
څه تودې نارې وهلې

دې تل وينې شينکي آسمان ته
تورو وريځو څادر ورکړ
ځنگلهٔ خپلې نغمې بس کړې
هر کالهٔ پورې خپل ورکړ

خو يوازې يو تنها ته،
يې په دې کوڅه کې پاته
په دې چوپړه چوپيايي کې
يې روان په کومه خوا ته

اې زما يوازې ياره !
اې زما خوږه دلداره !
ما لا ور نه دی ترلی
ستا په هيله ، ستا د پاره !

د ويدهٔ په شاني ياره
زما له کوره مه تيريږه
کور مې غيږ درته پرانيستې
د زړهٔ زوره مه تيريږه !

## ۲۳

ای دلداره ! په دې شپه چې
هم د مینې په سفر یې
لیمه لار نه شي لیدلای
ته له کوره راوتلای ؟!

برآسمان په غرغرو دی
بادې هم د نامرادیو
گوره تالندې غړمبېږي
په عالم کې دی کړېږي

هردم ور پرانیزم یاره !
خو په دې توره تیاره کې
نن مې خوب دی تښتیدلی
هیڅ شی هم نشم لیدلای

زه حیرانه ناسته گورم
د راتلو لار دې ده کومه ؟
ما به څنگه وغانځې ته ؟
په څه لاره به راځې ته ؟!

د تیاره ساحل له غاړې ؟
که د گڼ ځنگله له څنډو
که په خپله په اوبو کې ؟
یا په تورو دربلو کې ؟

راته وایه ، راته وایه
کومه لاره دې تاکلې
زما یاره ، زما یاره !
چې راځې زما د پاره ؟!

## ۲٤

که اوس ورځ وي ختمه شوې ، که تیاره شوه
که ورې چنچنې نه شي چونیدلی
که وزمې له پښو ولیدلې بزغ یې تت شو
که پستې وزمې اوس نشي چلیدلی
*** *** ***

په ما هم یو د تیارې نقاب راخپور کړه
لکه مخکه وي د خوب په څادر نغښتې
یا ماښام چې د کمزوري نیلوفر ګل
په ورو ، ورو راټولوي پاڼې او لښتې
*** *** ***

د هغه پردیس اخلاص او شرم ورك كړه
د هغه چې څوري خلاص او لار اوږده وي
چې قوت یې وي انجام ته رسیدلی
او زاړه کالي یې خاورو کې سپیره وي
*** *** ***

چې محتاج دې د کرم دي اې باداره !
هغه واره له خپل لطفه بهره ورکړه
په پرده کې دې د خپلې لطف بخښونکې -
شپې - د ګل غوندې یو نوی ژوندون ورکړه

## ۲۵

د ستړیا په درنه شپه کې	ماته خپل توفیق عطا کړه
چې په تا زما تکیه وي	بې تشویشه لمحې راکړه

په هغه یوازې شپه کې	خپله مینه راسره کړه
چې د سعي حاجت نه وي	په خوازهٔ خوب مې ویده کړه

داسې مه کړه چې اروا مې	ستا ئمانځنې ته کړم اړه
دا زهیره ستړې روح مې	کړه د خپلې مینې وړه

ځکه ، ته یې چې د ورځو	په ستومانو سترګو باندې
تور څادر د شپې راخپور کړې	ورځ ویده کړې ورنه لاندې

دې د پاره – دې د پاره	چې سبا ته راوینبیږي
د تازه ژوند د خوښیو –	منتظره نه پاتیږي

# ٢٦

دی راغی ، راته کیناست
مگر حیف چې زه ویده وم
څه بدمرغه غوندې خوب و ؟
څه بدمرغه شانته زه وم ؟

دی راغی هغه وخت چې –
شپه آرامه او چوپتیا وه
ژغ و ژوغ نه وو د هیچا
له پردو تشه دنیا وه

یو بربط یې و په لاس کې
په خوند خوند یې ژغولو
په خوږو خوږو نغمو یې
زما خوبونه نازولو

خو افسوس چې ویده بخت مې
کله هم نه راویښیږي
چې دی راشي زه ویده یم
واړه شپې مې ضایع کیږي

آه ، زه تل ولې ویدیږم
او دیدن یې هیرومه
د هغه چا چې په ساه یې
خوب و خیال ګل خورومه

## ۲۷

(۱) - رڼا څه ده ، رڼا څه ده ؟
د رڼا خبره وکړه !
- دا آرزو له بلې شوې
لمبې جوړه یوه ډیوه کړه

- دا آرزو به مې ډیوه کړم
خو لمبه یې نه رېبېږي
آه ، زما زړهٔ بدنصیبه
چې ترمرګ دې ژوند جارېږي

- ذلت ستا ور تکوي بیا
یو پیغام یې دی راوړی
چې تراوسه دې بار وېښ دی
د لیدو ځای یې تاکلی

- د آسمان مخ په ورو پټ شو
باران اوري نه درېږي
نه پوهېږم په کوګل کې
مې څه اور دی نه سړېږي

په مطلب يې نه پوهيږم     چې يوه لمحه بريښنا شي
لا تياره کړې زما په سترګو     بل حجاب مې مخته راشي

او زما زړهٔ لټوی لار     هغه ځای او هغې خوا ته
کوم چې ستا د شپو سندرې     ما دربولي هلته تا ته !

رڼا څه ده ؟ رڼا څه ده ؟     د رڼا خبره وکړه !
– د آرزو له بلې شوې     لمبې ، جوړه يوه ډيوه کړه

– وريځې بيا اوړي را اوړي     په فضا کې شور ماشور دی
د دې تورې تروږمۍ مخ     د رنجو تر تيرو تور دی

– خپل ژوند مه تيروه پام کړه     د تيارې په حال کې ګله
محبت د لار مشال کړه     دا د ژوند ډيوه کړه بله

---

*(۱) شاعر دلته هم د نورو اشعارو غوندې د يوې مينې پيغلې له خوا زغيږي خو په دې ترانه کې له خپلې نديمې سره خواله کوي – دا کرښې د دوی د سوال او ځواب نخښې دي .*

# ٢٨

په څه لوبو کې يم نښتې          چې وتلې ورنه نه شم
د شلولو هڅه وکړم          خو د زړه په خوږ اخته شم

آزادي ورڅخه غواړم          خو په زړهٔ مې ولولې دي
په آرزو يې هم شرميږم          څومره سنګلې سلسلې دي ؟

زه باور لرم چې ته خو          بې پايانه خزانه يې
او همدا چې زما يار يې          زما د هيلو پيمانه يې

خو په ما کې ها زړهٔ نشته          چې بس ستا په مينه ريږدي
د خپل کور او خپلې خونې          ننداره درپورې پريږدي

ها پرده چې يم پرې پټه          يو پوټى دى او ورکيږي
ورنه ورټ کوم خو بيا هم          پټ پټ زړهٔ ورته پسخيږي

زه يم ډيره پوروړې          ناکامي مې هم سوا دي
زما شرم دروند او پټ دى          آرزوګانى بې حيا دي

خو بيا هم چې زه غوښتنې          در وړم ، زړهٔ مې ستا په وړاندي
زړهٔ مې ريږدي هادي نه وي          چې کړې ګاره کش ورباندې

## ۲۹

چې د خپل نوم په حصار کې -
له دې تورو دیوالونو

مې ساتلې (۱) راته ژاړي
خلاصیدل او وتل غواړي

زه مدام پورې لګیا یم
دغه رنګ بنګ دیوالونه

نوې ختې ورتپمه
ترآسمانه لوړومه

خو چې هرڅومره د خاورو
په سایه کې یې له مانه

دیوالونه مې لوړیږي
حقیقي وجود ورکیږي

زه د دغو دیوالونو
چې کنډو پکې جوړ نشي

په هسکوالي باندې ویاړم
په اخیر یې چاره غواړم

خو سره له دومره پوهې
حقیقي وجود مې هیر کړ

او سره له دومره زیاره
د واهي شهرت لپاره

---

(۱) مراد ورڅخه روح دی .

# ٣٠

زه یوازې له کاله نه وم وتلې ستا د پاره
ما یوازې تر تا پورې ووهله لویه لاره

خو دا څوک دی ؟ د کوم ځای دی ؟ راپیدا شو دا له کومې ؟
چې په دې توره تیاره کې پټه خولهٔ راسره درومې

که هرڅومره زیار باسم چې جلایې کړم له ځانه
مګر دی نه جلا کیږي په هیڅ توګه هم له ما نه

له ډیر خیاله ، له ډیر نازه ځي د ګوتو په سرونو
په خپل لوړ آواز اثر وړي زما له نرمو سرودونو

ای باداره ، ای باداره ! دا ملګری زما د ژوند دی
دا په خپله زما نفس او – دا زما کوچنی جند دی

دی له سره نه شرمیږي زهٔ په دهٔ پورې شرمیږم
چې له دهٔ سره درځمه او په ورهٔ کې دې دریږم

## ۳۱

– راته وایه ، راته وایه
څه دي جُرم ، څه خطا وه
ای بندي ته چا بندي کړې ؟!
چې په جیل کې یې خوندي کړې ؟!

– دهٔ ویل :– چې خپل بادار مې
زما د خپل عمل سزا ده
دلته یمه راوستلی
چې بندي یې یم ساتلی

دهٔ ویل :– که څه هر څه مې
د لا ډیرو ډیرولو
له حاجته ډیریدلو
شوق مې زړهٔ وتخنولو

زما خیال و چې هستي کړم
تر دنیا د تسلط غیز
ترشمار او تر حد تیره
کړم سنامار غوندي چاپیره

د بادار حق مې ورنه کړ
د دنیا له خزانو مې
چې کړم زیاته خپله ونډه
وترله لویه پنډه

خو چې خوب را باندې راغی
بې پروا لاړم ویده شوم
په دې توره تیاره کې
د بادار په بستره کې

چې له خوبه رابیدار شوم
دا بندي د هوسونو
هغه گنج مې راته جیل شو
د خپل حرص په لومه ښکیل شو

- دهٔ ویل :- دا ځنځیرونه
دغه واړه مې په خپل لاس
دا کړي چې درته ښکاري
کړې په ډېر احتیاط تیاري

زما خیال وو دا چه دا به
او په دې ځنځیر به ځانته
ترجهان راگرزومه
جهاني قدرت گټمه

شپه او ورځ مې زیار وکیښ
په ظالمو گذارونو
شپه او ورځ مې په ځان یوه کړه
مې دا اوسپنه پسته کړه

ځو چې کلکې کړې درستې
په زیارونو ، په ربړونو
یوه له بل سره کوشیر شوې
سرې اوسپنې ځنځیر شوې !

ځنځیر جوړ شو خو له شرمه
چې په لوی لاس مې دې خپل ځان
چاته نه شمه ژړلی
په دا خپل ځنځیر تړلی

## ۳۲

د دنیا د دغو خلکو
ما له هرې خوا تړې دوی

چې په بنو یې راته پام دی
دا خو مینه نه شوه دام دی

خو ستا مینه داسې نه ده
تا آزاده یم پرې ایښې

که څه ده تر هرچا ډیره
نشته ستا په زړه کې ویره

دوی ویریږي هسې نه چې
دا جرئت نشي کولای

رانه هیر شی که تنها شم
چې آزاده لاره راشم

شپې او ورځې راغلې لاړې
ستا د مینې بل انداز دی

چې ځان نه راښکاروې ته
آزادي نه سلبوې ته

که څه لیږ دې یادوم زه
خو بیا هم ستا پاکه مینه

ځای دې نه نشته په زړه پورې
زما د مینې لاره ګورې

## ۳۳

سحر سپینه رونه ورځ وه
دوی وې :- ستا غوندی ده مونږ هم
چې دوی راغلل زما کور ته
مخه کړې د خدای لور ته

لیږ څه ځای راکړه چې مونږ هم
او په فضل او مرحمت یې
کړ له تا سره خدای یاد کړو
دا بیوزلي زړونه ښاد کړو

په یوه گوټ کې مې ځای ورکړ
شپه او ورځ به لوی خاوند ته
پټه خوله ول ، سنجیده ول
په دعا او په سجده ول

خو یوه شپه مې په تیاره کې
په لوټ مار باندې لگیا دي
ورته وکتل چې څه کا ؟
څه ورانی دی چې یې نه کا ؟

زما پاك حرم یې لوټ کړ
زما هر څه یې تالا کړه
شرم یې وغورزاوه ښا ته
هیڅ یې نه پریښودل ماته

## ۳٤

صرف د خولې او د خبرو — دومره برخه راکړه ما ته
چې په هغې مې ای هرڅه — بس درناري کړمه تا ته !

ما ته دومره آرزو راکړه — چې د هغې په رڼا کې
تنها تا محسوسومه — په هر لور په هره خوا کې

بس یوه دومره وړه برخه — راته پرېږده چې د تا یم
درته ګورم - راته ښکارې — راته وایې - درته وایم

ستا د عشق په زولنو کې — پابندي ستا د رضا را
هسې ژوند چې پرې پوره مې — شي مقصد د مینې ستا را

## ۳۵

هلته ، هلته چې له زړونو
ډار او ویره وي لیښلې
آزادي او سرلوړي وي
علم و پوهه وي منلې

هلته ، هلته چې نه شر وي ،
نه فتنې وي ، نه جنګونه
نه ورانیزي ، نه نړیزي
د کورګیو دیوالونه

هلته ، هلته چې الفاظ وي
د رښتیا په چینو ولي
په کوم ځای کې چې خپلواك زیار
د تکمیل په طلب زغلي

چې روڼې چینې د عقل
نه شي پټې په وهمو کې
د فضولو رواجونو
په شګلنو ځنګلو کې

هلته ، هلته چې فکرونه
ستا له لطفه بهره مومي
خیال او پام او عملونه
د پراخوالي په خوا درومي

دا زما سمسوره مینه
ای باداره ، ای باداره !
په هغه آزاد جنت کې
په خپل لطف کړه بیداره

## ٣٦

لويه خدايه ، لويه خدايه
د افلاس بدي ريشي مې
كه قبولي مې اسرې كړې
له كمزوري زړهٔ نه پرې كړې

داسي توان راكړه چې پيښې
او غمونه ، خوشحالي مې
مې زړهٔ نشي خوځولای
په آسانه شم زغملای

چې غريب ته مې نظر وي
د گستاخ قوت په مخ كې
په خواري يې زهيريږم
پر گونډو نه شم دريږم

قوت راكړه چې خپل نفس مې
ستا رضا ته وسپارم ځان
له ناوړو چارو لوړ كړم
او زړهٔ ستا له ميني وركړم

## ۳۷

زما خیال و چې په پښو کې –
د سفر قوت شو ختم

مې نور زور نه دی را پاته
لار ده بنده هرې خوا ته

څوری خلاص او لارې بندې
یوه خاموښ خلوت ته پټه

اوس یې وخت دی چې تباه شم
پناه وروړم او پناه شم

خو چې گورم ستا رضا لا
ستا قوه د ارادې لا

زما د لوییې لارې مله ده
زما د ژوند بار و بنه ده

چې زاړه تکي په ژبه
بیا یو څو نوې نغمې مې

اړوم اړوم مړه شي
راخورې د زړه په زړه شي

او چې چیرته زړې نخښې
هلته نوی ملك د نویو

له نظره محوه کیږي
عجایبو څرگندیږي

## ۳۸

زما په زړهٔ کې تکراریږي
دا چې زه درباندې ویاړم
زما په روح کې مشخولیږي
بس یو تا غواړم ، تا غواړم !

د دنیا چې خومره هیلې ،
دا چې شپه او ورځ په ذهن
درستې پوچې دي او تشې
آرزوګانې دي ، اسرې دي
او په زړهٔ زما خورې دي
بس یو تا غواړم تا غواړم !

لکه شپه چې د نور هیله
د غفلت د تل آواز مې
په هرحال او په هروخت کې
پټه ساتي په تیاره کې
ازانګه کړي په نارو کې
بس یو تا غواړم ، تا غواړم !

لکه مست طوفان په ټول زور
له عصیانه مې ستا عشق ته
خو دی هم په ډاګه وایې :-
امن مات کړي او رامیزي
صدمه که در رسیږي
بس یو تا غواړم ، تا غواړم !

## ۳۹

هغه وخت چې دغه زما زړهٔ وچ او سخت شي
ته په ما باندی د رحم باران وکړه !
هغه وخت چې مې ژوندون له مینې تش شي
د نغمو پردو کې راشه ، احسان وکړه
*** *** ***

د جهان د فتنه زا چارو په شور کې
چې ما هم ورسره بیایې ، راشه راشه !
له سکون او له آرام سره خاونده !
په بې صبر او ناکراره زړهٔ کې تا شه
*** *** ***

هغه دم چې دا بیوزل او بینوا زړهٔ
د زندان په یوهٔ گوټ کې غلی ژاړي
په شاهي جاه وجلال یې ور ورمات کړه
ای زما باچا ! راتگ دې درنه غواړي
*** *** ***

هغه وخت چې مې د زړهٔ په ارزوگانو
د باطلو وهمو گرد پریوزي ته راشه
ته اې تل تل پاك او ویښه ، تنها خدایه
له رعدونو ، له بریښناوو سره راشه

## ٤٠

زما خدایه ! له ډیر وخته مې له تا نه
دغه تږی زړه د رحم باران غواړي
یو نړی څادر هم نشته د ورو ، مځکه -
له دې لوخو افقونو امان غواړي

یوه ټیټه ، لالهانده نخسنه نشته
د خورا لرې باران د لندبل هم
د آسمان لیمه له نمه خالي سبکاري
او وچ شوی دی د مځکې د زړهٔ تل هم

یو د مرگ غوندي خوفناکه طوفان تېښ کړه
که د تا رضا هم دغه شاني وي بیا
د بریښنا اوږده غمچینه پسې واخله
چې آسمان له سر تر پښو وپړوي بیا

ای باداره ! بیا در وبوله حضور ته
دا ظالمه د بدن سوهان تودوخه
دا ساکته ، ساه نیولې ، ساه نیونکې
ډاروونکې ، سوځونکې شان تودوخه

ستا د مینې له اوریځو څخه غواړم
چې یې داسي وي د مځکې په لور سترګې
لکه پلار چې وي په قهر او لندې شي
په هغه وخت کې له اوښکو د مور سترګې

٤١

تا په سیوري کې ځان نغښتی دی دلداره !
چیرته لرې یې ولاړ د ټولو شا ته ؟
په کچه سړک یې دوړې دړبادیږي
تیل وهي دې ، پام وخیال یې نه وي تاته
*** *** ***

څو ګړۍ وشوې چې دلته منتظره
نذرانه په لاس ولاړه یمه تاته
هر لاروی مې له ټکري یو ګل وراخلي
اوس نژدې دی چې یو ګل نه شي را پاته
*** *** ***

ګیځ تیر شو ، غرمه لاړه ، اوس ماښام دی
زما لیمې له خوبه پټې پټې کیږي
هرڅوك ځي خپلو کورو ته چې ما وینې
راته خاندي ، ځوروي مې ، نه شرمیږي
*** *** ***

زه یوه خواره ، پلو غاړې جینکۍ یم
رهروان فکر کوي چې پکر غواړم
ستر ګې ښکته واچوم او په ځواب کې
چې ځواب نه لرم پټې سترګې ژاړم
*** *** ***

آه ، رښتیا هغوی ته کله شم ویلای
چې زه ستا په وعده ګورمه ستا لار ته
زه له شرمه څنګه ووایم چې زه خو
بې غربته جهیز نه لرمه یار ته
*** *** ***

دا غرور مې د خپل زړهٔ په تل کې ونغښت
پر وښو ناسته او ګورمه آسمان ته
ستا ناڅاپه راتګ وینمه په خوب کې
چې راځې په ډېر عالي شوکت او شان ته !
*** *** ***

د بکۍ زرین بیرغ دې ورپیږي
یوه سپیڅلې رڼا تیت شي و هر لور ته
درست حیران شي ، چې راکوز شي او زما سر
کړې په مینه له سپیرو خاورو درپورته

او یوې داسې بې پناهې جینکۍ ته
ستا له څنګه ځای د ناستې موندل کیږي
کومه خواره چې له شرم او له نخو ته
لکه پاڼه په نرۍ وږمه رپیږي
***     ***     ***

خو ، وخت تیر شو لا دې زغ د بګۍ نښته
داسې ښکارې چې دا واړه خوب وخیال وو
جلوسونه راغله ، تیر شول د وګړو
د هغو چې کوم له درده فارغبال وو
***     ***     ***

آیا ته هغه په پټه خوله ولاړ یې
په یوه سورې کې د ټولو خلکو شا ته ؟!
او زه دغه منتظره یم چې ژاړم
د ستومانو آرزوګانو ستومانتیا ته

## ٤٢

د سحر په خړه وږه
دا آواز مې شو تر غوږه
چې د لمر وړانګې لا نه وې
چې په خوند یې راته ووې :-

چې یوازې زه او ته به
ځو به ځو به هغې خوا ته
په بېړۍ کې روانېږو
چې بس زه او ته پوهېږو

د بې پایه سفر حال به
له مقام د ناپاکلي -
پټ ساتو نه به یې نمایو
عبادت به هیڅ نه وایو

په بې څنډې سمندر کې
کوم چې درسته توجه دې
ستا د پټې موسکا وړاندې
زما سندرې نغمې کاندې

د څپو غوندې آزادې
د وږمو غوندې فارغې
د الفاظو له کړېو
له موجونو ، له بېړېو

دا ده شپه هم رارسېږي
مرغۍ الوزي یوه یوه
د ساحل تر څنډو پورې
ځي تر خپلو ځالو پورې

آیا وخت یې نه دی اوس هم
دا بېړۍ له سترګو پټه
چې دا کلک ځنځیر پله شي
د غروب وروستۍ شغله شي

## ٤٣

هغه ورځ ، هم هغه يوه ورځ
تيار نه کړای شو ، او راغلې -
چې ما ځان د تا د پاره -
ای زما د زړهٔ واکداره !

د عادي سري په توګه
زما په زړهٔ ننوتلې
ناخبره ، نابېره
ای زما له زړهٔ خبره !

زما د ژوند فاني لمحې دي
او چې نن هغو لمحو ته
کړې په مهر جاويدانې
اړوم سترګې روښانې

راته ښکاري چې ها تولې
لکه زما ياد يې پرتې دي
زما په هيرو ورځو شپو کې
په دې خاورو ، په خاشو کې

تا زما د کوچنيوالي
خو هيڅکله په نفرت او -
لوبې خاورې کې ليدلې
کرکه نه و ګرزيدلې

کوم قدم چې مې د لوبو
اوس له ستورو څخه اورم
په کورګي کې اوريدهٔ زغ
د هغه د ستنيده زغ

زما خوښي په دې کې نغښتې
څو چې سيوری ځي رڼا پسې
چې يم ستا په انتظار کې
او زه ناسته يم په لار کې

## ٤٤

زما خوښي په دې کې نغښتې چې یم ستا په انتظار کې
څو چې سیوری ځي رنا پسې او زه ناسته یم په لار کې
څو باران د هسك له لوري
د ګرمي په سترګو اوري
څه تازه زېری راوړي رو‌یبار بیا له آسمانونو
تېریك وایې او را درومي یأس وړي له ارمانونو
زړهٔ مې ښاد او طبعه ښه ده
د وږمې ساه هم خوږه ده
له سهاره تر ماښامه یمه ناسته په څپل وره کې
او پوهېږم چې را درومي خوشحالی په اندیښنه کې
خوشحالي به ناګهانه
کړي د هیلو کور روښانه
په دې حال کې زه مسکېږم د خوښي سندرې وایم
او یوازې مې په زړهٔ کې د مستي سندرې وایم
لـرم هیله چې له بادهٔ
د پیمان په بوی شم ښاده

## ٤٥

د قدم ببسته ښنکالو یې　　　ته هم اورې او که نه ؟
په هر دم – هره لحظه کې　　　هره ورځ او هره شپه

واوره تل هغه را درومي !

ما په ورو ورو کیفیتونو　　　د ښادیو ، د غمونو
آواز ورایه څو وزي　　　دا آواز له آوازونو :-

واوزه تل هغه را درومي !

د « اپریل » د تودې میاشتې　　　په خوشبویه ورځو شپو کې
د ځنګله له خوابه راشي　　　داسې اورم په ځنګلو کې

واوره تل هغه را درومي !

د « جولای » د بارانې میاشت　　　په یوه توره تروږمۍ کې
د بریښنا په تړۍ لاره　　　د اوریځو په بګۍ کې

واوره تل هغه را درومي !

چې غمونه را چاپیر شي　　　د دهٔ پل مې تر زړهٔ لویږي
په مسنود یې د زړین ګام　　　زما د زړهٔ خوښې ځلیږي

واوره تل هغه را درومي !

# ٤٦

نه پوهیږم چې له کله
چې له ما سره یوځای شي
ته راځې او رالنډیږې ؟!
را روان یې نه دریږې

که ستا لمر دی ، که دې ستوري
تا زما له سترګو نشي
که سپوږمۍ ده جلوه ګره
پټولای زما لمره !

په شپو ورځو دې ګامونو
ستا رویبار مې د زړهٔ کور ته
په سنکالو وړاړولم
راغی ، پټ یې وېللم

نه پوهیږم چې نن زما ژوند
د خوښۍ حس مې په زړهٔ کې
ولې دغسې اوتر دی ؟
په څه هسې شناګر دی ؟

اوس یا هغه وخت راغلی
چې له تا مې اړوې پام
چې هر کار کسب ته شا کړم
له هر څه سترګې پنا کړم

د پستې وزمې له څانګو
ستا د نن یوه لطیفه
تسلي را ټولومه
خوشبويي محسوسومه

## ٤٧

شپه نژدې ده چې شي تیره   په بیکاره انتظار کې
ستوماني مې غالبیږي   همیشه یم په دې دار کې

کوم سهار به دې ناڅاپه   راشي زه به ویښه نه یم
زه به ستړی او ستومانه   د غفلت په خوب ویده یم

آه ، یارانو ، عزیزانو   که راته ، کله ، له کومې
زه ویدم وم ، او دی راغی   لار ورپرېږدئ چې را درومي

که د ده د قدمونو   په ښکالو نه شوم راویښه
په رڼه سحرېې هم که –   په راتلو نه شوم راویښه

دا هم نه غوارم چې ویسبه — د چنچنو په غوغا شم
د رونا جشن کې گډه — د ورزمې په د لاسا شم

ما هم هسې ویده پریږدئ — چې داده خوب مې خوښیږي
که بادار مې هم ناخاپه — راځي وره ته مې دریږي

آه ، زما خوب ، او دا خوږ خوب — چې له سترگو نه وتلای
بس د لطف او مینې لاس یې — د محبوب شي تشولای

آه ، لیمې مې صرف د هغه — د موسکا په نور رونیږي
لکه خوب په نیمه شپه کې — چې زما سر ته دریږي

پریږدئ ، پریږدئ چې تر ټولو — رڼاگانو ، صورتونو
اول دی وینم په سترگو — چې ویښیږم له خوبونو

زما د ویښې روح لپاره — د خوښۍ لومړۍ ځلا شي
زما راتله له خوبه ځانته — فوراً دۀ ته ستنیدا شي

## ٤٨

د سکوت په سمندر کې
چې سحر پورته نغمې شوې

د مرغانو نغمې راغلې
او ورې ورې ځپې شوې

د سرك په غاړه غاړه
د ګلونو ننداري وې

او د وريځو له چولو نه
طلايي ورانګې خپرې وې

خو زمونږ ورته پام نه وو
خپله لاره مو وهله

هيڅ پروا مو د دې سنګلو
مناظرو نه ساتله

نه مو وبلله چيرته
د خوښۍ يوه سندره

نه مو وخندل له شوقه
نه مو وکړه يوه خبره

نه د کلیو خوا ته لاړو
نه مو کومه لوبه وکړه ،
د خه سود سودا د پاره
نه هوسا شوو ؛ تلو په لاره

چې وخت لنډ او سفر اوږد و
څومره وخت په تیریدو و
څکه دومره ګړندي تلو
مونږ به هومره ګړندي تلو

لمر تندي ته مخامخ شو
غومبر سیوري کې وهله
ګرمي تیتې کړې وزرې
ښایسته مستي کوترې

کوخې ننوتې غار ته
د غرمې تودې هوا کې
مرغۍ څانګو کې شوه غلی
وچې پاڼې الوتلې

د شپا نه بچي تر ونې –
بې اختیاره یې له خوبه
لاندې ناست دی او زنګیږي
سر یوه بله خوا کیږي

د اوبو په غاړه ما هم
پر وښو باندې خپاره کړه
خپل ستومانه اندامونه –
چې سوکه مې شي هډونه

زما ملګرو مسخره کړم
زه یې پریښودم له کبره
په ریشخند راته مسکي شول
په نفرت رانه رهي شول

نه یې شاته پام او خیال و
څو د وخت په شنه بخونه
نه سوکه شول ، نه په ځټ شول
ګردله کې رانه پټ شول

دوی له ډیرو هسکو تیټو
له عجیب عجیب ځایونو
چمنونو نه هم تیر شول
له ملکونو نه هم تیر شول

د اوږدې او بې پایانې
عزت ستاسي په قسمت دی
لارې تلونکو ، رهبروانو ؟!
فخر ستا سو دی ځوانانو ؟!

پیټې پیغور کړمه چونګارې
هیڅ خوب راسره نه و
دغې ګرمې پاخولم
پټه خوله ودریدلم

ما خپل ځان د یوه مسرور عجز
د تیارو سر ور په سیورې
په ژورو کې لیدلو
کې ، مې پټ او ورك ګڼلو

د سکون د تیاره سیورې
له ما هیر کړ هغه فکر
چې په لمر و جړ او شوی
چې زه څه ته وم راغلی ؟

چې را پاڅیدم له خوبه
د موسکا سیل دې پرې ایښی
ته ولاړ وې زما سر ته
زما د خوب پراته ډګر ته

آه ، زه څومره ویریدمه
ما وې تاته رسیدل به
له اوږدې او ستړې لارې
ناممکن کړې سختې چارې

٤٩

راغلې ، راغلې له ټپل تخته شوې راښکته
راغلې ، راغلې او زما کالهٔ ته راغلې !

ما یوازې د کورګې په یوه ګوټ کې
د خپل مات زړګي نغمې راژغولې
زما د عجز او غریبي تتې سندرې
تا د مینې په غوږونو واورېدلې
راغلې ، راغلې او زما جوګې ته راغلې !

په دربار کې دې پاخه استادان پند دي
چې هر یو درته هروخت وایې سندرې
خو هغه چې ستا په زړهٔ یې اثر وکړ
وو د دغې نو آموزې را منګرې
ځکه راغلې او زما جوګې ته راغلې !

زما سرود سره د ساز له لوی جهان نه
یو تنکی زړهٔ پارونکی آواز مل و
تا یو ګل د جایزې په توګه راکړ
خومره ښکلې جایزه ، خومره ښه ګل و ؟
راغلې ، راغلې او زما جوګې ته راغلې !



چې د پکر په خیال ووتم له کوره
لکه سیوری هر دیوال ته دریدمه
د خیر راکړئ زغ په خوله ، کچکول په غاړه
کور په کور او وره په وره راګرزیدمه
*** *** ***

د ځلانده خوب په خیر ماته له لرې
ستا زرینه شاهانه بګۍ سنکاره شوه
زه حیرانه پاته شوم چې کوم باچا دی
چې لیدو ته یې بیواره نظاره شوه ؟
*** *** ***

امیدونه مې راپاخیدل په زړهٔ کې
آرزوګانې لکه ګل په غوړیدو شوې
زما خیال و چې که خیرو بخت راویښ شو
اوس مې بدې ورځې خې په تیریدو شوې
*** *** ***

زه په لار کې منتظره وم ولاړه
چې باچا ګوندي بې غوښتو یو څه راکړي
په دولت کې به مې ډوبه کړی له جوده
له سرو سپینو به مې ښکلې شاوخوا کړي
*** *** ***

ستا زرینه بګی راغله هلته تم شوه
په هغه ځای کې چې زه ومه ولاړه
راته مسک شوې او راکوز شوې زما خواته
د نیستي وسوسه واړه له ما ولاړه
*** *** ***

ما دا حس کړه چې آخر زما په ژوند کې
د خوښۍ د لمحو وار راتهٔ او راغی
د حسرت شپې لاړې دا دی چې پخپله
د جهان د باچاهانو سردار راغی
*** *** ***

زه په دغو هوسنو غوړیدمه
چې ناڅاپه دې ښی لاس ونیوې راته
او پوښتنه دې له ما وکړه چې ګوره
راوړه څه شی دې راوړي جینۍ ماته ؟!

چې دې لاس دی یوې پکیرې ته نیولی
آه ، دا څه شاهانه ټوکه ده باداره ؟!
پریشانه شوم ، خو لاس مې کړ بنی ته
چې دانه غنم راواخلم ستا د پاره
***　　***　　***

چې ماښام مې کور کړه خپله بنی تشه
حیراني مې هغه وخت کې شوه لا ډیره
چې د پکر په غله کې مې واهه لاس
یوه د سرو زرو دانه شوه را برسیره
***　　***　　***

په رټ رټ مې اوښکې تویې شوې له سترګو
هې افسوس چې بدمرغي کړمه نادانه
کاشکې تا ته مې وای هر څه وړاندي کړي
کاشکې درسته در جار شوې وای سلطانه !

## ۵۱

شپه ده تیاره شوې کلیوال درسته راغلي دي
زمونږ ورځنی چارې خو هم پای ته رسیدلي دي
څنګه چې ورروستي میلمانه هم ځای په ځای شوي دي
ننوتو خونو ته او ورونه مو تړلي دي
* * *          * * *          * * *

چا ویل :- باچا راځي او هم په دغه شپه راځي
مونږ وخندل ومو ویل :- نه یې منو ، نه راځي
چا ویل :- څوك راغی مګر ، وګورئ چې ور وهي
مونږ وویل :- هیڅوك نشته باد به یې په سر وهي
* * *          * * *          * * *

مړې مو کړې ډیوې او تاریکي ته مو پناه وروړه
پریوتو بستر ته مو له ستونځو ستړې ساه وروړه
*** *** ***

چا ویل :- رویبار راځي ځرپې یې د ګامونو دی
مونږ په ځټ ځټ وخندل چې زور د شمالونو دی
*** *** ***

نیمه شپه یو ږغ شو ، مونږ وې تالنده غوریږي بیا
مځکه ، دیوالونه پرې رپیږي او خوځیږي بیا
خوب را ځخه لاړ او چا وې ، دی د ارابو آواز
مونږ له خوبه ووې :- دی د تالندې او ورو آواز
*** *** ***

شپه لا تیاره وه د ډولونو د ډنګا ږغ شو
« هلئ پاځئ ، ځنډ مه کوئ » جوخت ورسره دا ږغ شو
مونږ په بیړه پاځیدو له خوبه چې نارې شوې بیا
هغه دی شاهي علم او دا دی نغارې شوې بیا
*** *** ***

مونږ سره نارې کړې چې معلومه شوه باچا راځي
هغه هم په داسي تنګ فرصت کې په دې خوا راځي
کومه ده ډیوه ، او امیل کوم دی ، تخت له کومه کړو ؟ ...
کومه ده یوه روغه خونه ، فرش او رخت له کومه کړو ؟ ...
*** *** ***

شرم دی ، ډیر شرم ؛ چې نه ظرف او نه کالي لرو
مونږ به د باچا په راتلو ولې خوشحالي لرو ؟
*** *** ***

چا ویل :– بې ځایه سورې بس کړئ او شرمیږئ مه
هسې په تش لاس یې روغبړ وکړئ په شا کیږئ مه
وریې ولئ خپلو تیاره تورو کنډوالو لره
ځکه د ده جوړه ده له ټیټو دیوالو سره
*** *** ***

وړونه ورته بیرته شول ، ناقوس په زغیدا راغی
زمونږ د چوپتیا کور ته په تیاره شپه کې باچا راغی
تالندې غوریږي ، د بریښنا له رڼا شپه ریږدي
توره تروږمۍ ده د سیلۍ له وهمه پښه ریږدي
*** *** ***

راشه ، ورته خلاصه دې د رنګې خونې لاره کړه
نور دې که څه نشته یود زړه پوزۍ اواره کړه
ځکه چې زمونږ د دې مهیبې شپې باچا راغی
ګډ له دې طوفان سره ناڅاپه په دې خوا راغی

## ۵۲

ما وې زه به درنه غواړم
خو دا زړه را سره نه و

ستا امیل د سرو گلونو
چې مخ لوڅ کړي د رازونو

منتظره شوم سهار ته
گوندې پاته وي څو پاڼې

چې ته پاڅې له بستره
زه يې ټولې کړم دلبره !

سحر بيا لکه بيوزلې -
په دې تمه گرزيدمه

درويزگره چې لگيا شي
چې يو دوه پاڼې پيدا شي

دريغه ، هيڅ په لاس رانغله
ستا د مينې کومه نخښنه

ستا د سرو گلو له هاره
پاته نه وه زما د پاره.

نه کوم گل شته ، نه یې پاڼه
نه خوشبویه مساله شته
نه خالي شیشه د عطرو
نه یې نخښه ، نشانه شته

بلکې بس ستا تیره توره
چې لمبې غوندې کړیږي
خو بیا هم چې دی ستا لطف
د بریښنا غوندې ځلیږي

اوس په دې دنیا کې ماته
له رڼا پټې تیارې شوې
زما پر هڅو بریالی شوې
په بستر باندې خورې شوې

زه به هرڅه ورنه جار کړم
چې ویل یې هسې ما ته :-
علایق به باندې پرې کړم
چې یې وښودای شي چا ته ؟!

دار او بیم به رانه تښتي
نه عطرونه ، نه گلونه
اوس حقیر آرایشونه
چې رژیږي ور نه زړونه

خپلو زلفو ته مې شا کړه
اندیښنو کړم را ایساره
اې زما د زړهٔ مالکه !
چې دې راکړ ماته یاره ؟!

نه د خونې په یوه گوټ کې
چیرې هم نه پټیدله
نه زما په کره او وره کې
زما سینه یې تخنوله

تا د سم سینگار لپاره
ما به څنگه گرزوله ؟
اوس له ما سره نور لوبې
شرمیدم له دې عمله

او زما زړه بې اختیاره
لکه تالنده درنه ده
ښه له دې نه غوره نشته
ښه د ډار خبره نشته

چې سهار مې تر کړکیو
نوې نوې پلوشې دي –
بس یو مرګ دې راته پرېښود
د ژوند خول مې ورته کېښود

اوریدل مې له مرغیو
وایه ، تا سره ښه شي شته
چې ستا توره راسره ده
چې دا توره راسره ده

نه در پاته عود بتی ده
بس دا لویه تیره توره
ترکومه او پرېږدمه
زړه٬په هیڅ شي نه تړمه

په حیرت کې دوبه ناسته
چې دې دا ښه ور انعام و
اوس نه چا پسې ګرېږم
پته خوله ناسته ژړېږم

دا تیره توره به ښه کړم
که مې وای په غاړه کړې
ده ښه ناز یا ادا پاته
دغه توره راکړه ماته

توریالی ګرزوي تورې
زه کمزورې جینکۍ وم
د نانځکو نه جوړیږي
آرایش ته نه تړپلیزي

دا د لاس د سرو وښي دي — ښومره ښکلي معلوميږي
رنګ په رنګ ايښي غمي يې — لکه ستوري تل ځليږي

خو تر دې هم د تا توره
ما ته ډيره ده منظوره

چې له ډيره آب و تابه — د بريښنا غوندې کږه شي
د « وشنو » د کونترونو — غوندې ښکلې ، ښايسته شي

د غروب د لمر شغله شي
له قارجنې سرخې سره شي

هغه ريږدي ، لکه ريږدي — په ډير درد کې ناقراره -
د اجل په کارې وارې — د ژوندون ځواب له واره

چې رپيږي ، چې ځليږي
ژوند و مرګ ورنه ويريږي

هغه بريښي خو له بريښنه — لکه بل اور د پيلو ځي
د دنيا هوا هوس ټول — په سپيڅلې لمبه سوځي

زما خوښه تر هر شي ده
ښايسته دې تر وښي ده

لکه هسک په رڼو ستورو — ستا وښي جواهر کاره
ښايسته دي ، خو ستا توره — اى د تالندو واکداره !

هم بيسارې ده جلوو کې
هم هيبت راولي زړو کې

## ٥٤

منم ، ډيره يې غمجنه          اندېښنې دې ميلمنې دي
او درنې سترګې دې ډېرې          له درانه خوبه درنې دي

نه پوهيږې چې ګل څنګه          حکومت کا په اغزو کې ؟!
پاڅه ، پاڅه ضايع کيږي          فرصتونه په خوبو کې

د دې لو لارې په پای کې          هلته لرې ، په ها لوري
په پرديس عالم کې ګوښې          ستا لالی ستا لاره ګوري

له هغه سره دروه مه کړه          سترګې وغړوه پاڅه
له خوبونو دې په زړهٔ کې          مينه مه سړوه پاڅه

د غرمې د لمر له تاوه          که سرې شګې نينې کيږي
څه پروا که لِه تودخې          د آسمان هم ساه ګوډيږي ؟

آيا ستا د زړهٔ په تل کې          هيڅ سرور نه موندل کيږي ؟!
چې جرس دې شي د لارې          مزلونه پرې لنډيږي

څه پروا که د کړاو دا –          اوږده لاره بنه اوږده شي
د هر سترې پله سنکالو به          يوه خوږه غوندي نغمه شي

كندز ٨ / ١ / ٥٥



څه خو شته ، څه خو شته یاره ! بې څه نه دی
چې دا زه دې دومره خوښه یم ساتلې
دا هم نه ښکارې بې څه چې شوې راښکته
په راتګ دې بې څه نه یمه ګمانځلې
* * *     * * *     * * *

ای مالك د آسمانونو ! که زه نه وای
د تا مینه به وای چیرته اوسیدلې ؟
تا په خپلې بې پایانې لو هستې کې
زه له ځان سره شریکه یم ګڼلې
* * *     * * *     * * *

زما زړهٔ دې په کاملې مينې ډك کړ
زما مينه دې په خپل لطف روزلې
ستا رضا زما په ژوند کې مشغوليږي
چې هر دم يې ځيره بل شان اړولې
*** *** ***

اى باچا د باچهانو ! دې د پاره
چې زما د زړهٔ مرغۍ دې وې نيولې
ځان راښيې د جهان ترښکلو ښکلې
هرساعت دې وې ښکلا تريخوا ښکلې
*** *** ***

او د دې غرض لپاره دې وې مينه
د غوښتونکې زړهٔ په مينه کې اخزلې
دواړه گډې کړې چې بيا د دوى له مينځه
د کامل وحدت ځيره وې تا ښودلې

ای ، ای رڼا ، رڼا　　ای – ای زما رڼا
ځلونکې د دنیا　　د زړهٔ صفا رڼا
مچوُنکې د لیمو　　پاروُنکې د آرزو
زما د ژوند په زړهٔ　　کوې نخا رڼا
ای – ای سنکلې رڼا　　زما د عشق د ساز
تارونه ریزدوې　　ټنګوې لکه شهباز
*　*　*　　*　*　*

آسمان سره غوړیږي　　ورمه شي په تورپونو
خندا د تا له لطفه　　خوره شي په ملکونو
مرغان له خوشحالۍ نه　　راتیت شي په سیندونو
وزرونه راخواره کړي　　په خیر د بادوانونو
رابیل دي که سمن　　نور ته سترګې غړوي
د رڼا په نرو ګوتو　　خپلې غوټې غوړوي
*　*　*　　*　*　*

ای – ای زما محبوبه !　　رڼا چې وځلیږي
وریځې یې له بریسنه　　ټکر ، ټکر بیلیږي
جراو شي توري وریځې　　چې ورانګې پرې لګیږي
او پانې په خوبنیو　　همه واړه وغوړیږي
سیلاب د خوشحالیو　　ورنیسي نړۍ واړه
ډوبوي یې خوند و رنګ　　د جنت د چینې غاړه

## ۵۷

پریږده زما په وروستنۍ نغمه کې ځای شي
د خوښیو همه واړه فشارونه
د پسرلي خوږه وږمه شي او په مځکه
راخوره شي او ژوندي کړي بهارونه
*** *** ***

ها خوښي چې مرګ و ژوند نخوي دواړه
ها خوښي چې مرګ و ژوند ونه نڅا کا
ها خوښي چې د طوفان غوندي ځبي ژوند
بیا په برخه د ژوندون مسته خندا کا
*** *** ***

ها خوښي چې پټه خوله ، په ډکو سترګو
په رقت سره کړي ګل باندي پرته وي
او هغه چې نور له ټولو موجوداتو
بېنیازه او د لفظ پابنده نه وي

## ۵۸

ای زما د زړه محبوبه ! زه پوهېږم
دا چې پاڼې ړنوي زرينې وړانګې
دا وږمې چې مې سږې په مخ لګېږي
دا له ګلو – له غوټيو ښکلې څانګې
دا په هسك کې لامبوزنې شانته وريځې
واړه هيڅ دي خو باقي ده يوه ستا مينه
*** *** ***

د سهار رڼا زما ليمه توفان کړي
دا سې دی د تا پيغام زما د پاره
مخ دې دې پلو کوږ کړی او له پاسه
ښکته غلی غلی ګوره ماته ياره !
زه په تيټو سترګو پټ پټ درته ګورم
زما زړهٔ دې قدمونه ښکلوينه

## ۵۹

هرځای چې په ساحل د سمندر ښېې لګيږي
واړهٔ سره راټول وي او په خندو کې لوبيږي
پاس چې لوی او ارته آسمان ته ګورې غلې وي
لاندې لټ پلاندو ځپو بحر درست نيولی دی
هرځای د دنيا د سمندر په هره غاړه
غونډوي ورو لوبو ته واړهٔ ماشومان واړه
***　　***　　***

دوی د شګو خونې جوړوي او ورانوي په شوق
شکې اړوي او تش ګوجي ورټولوي په شوق
وچې پاڼې ټولې او بېړۍ ورنه تيارې کړي
بيايې په خندا ، په مستۍ بحر ته غورزارې کړي
هرځای چې بې ګورې ماشومان د سيند په غاړه
هسې وي مشغول په اوتو بوتو باندې واړه
نه پوهيږي دوی چې لامبو څنګه وهل کيږي ؟
نه په دې خبر وي چې تور ځنګه سيند ته لوبږي ؟
***　　***　　***

سیپی، ورتولونکي مرغلرو پسې غوټې وهي
گرزي سوداگر او په دریا کې ورځې شپې وهي
مگر له ماشوم سره د گټې وټې غم نه وي
شکې تولوي بیایې ټینديي د کوټې غم نه وي
نه یې د څه پټو خزانو سودا په سر کې وي
نه یې د بیړیو چلاو زده په سمندر کې وي
مست او توفاني سمندر خاندي او غورزېږي
ژېړې پلوشې یې په ساحل باندي خپرېږي
وړکوته د بحر توفاني څپې ښکالو ښکاري
خوشې بې معنا غنگوړ ، د مور پسته للو ښکاري
لوی سمندر ووړ شي کوي لوبې له وړو سره
دوی ته په ساحل ننداره ښېي پلوشو سره
هرځای په جهان کې د څپان بحر په څنډه
ورکو جوړه کړې وي د لوبو وړه غونډه
بې لارې توفانونه چې په هسك کې وهي منډې
دوبی کړی بیړی، وهي په ژوند پورې ملنډې
هره خوا مرگ خپور دی خو ماشوم نه ترې خبرېږي
ډاډه زرونه په غاړو خپلو لوبو ته غونډېږي
هرځای چې د بحر په ساحل د ژوند اثر ښکاري
لویې لوبې ډلی د وړو په لوبو سر ښکارې

## ٦٠

بیگا په تت ځنګله کې د ښپان را ده' په غاړه
کله چې تیاره په مځکه ورو ، ورو خوریدله
یوه بله ډیوه یې تر پلو لاندې نیولې وه
سنګلې جینکۍ په بیړه بیړه تیریدله
* * * * * * * * *

ما ویل جینۍ ! ښه درته وایم - راته وګوره !
زما خونه تیاره ده ، ته دا بله ډیوه چیرې وړې ؟
دا ډیوه که راکړې زما توره شپه به ورکه کړې
خوا کې دې تیاره ده ته رڼا درسره لیرې وړې
* * * * * * * * *

سنکلي توري سترګي يې را واړولي وې ويل :-
زما تر پلو لاندي پټه ده د نذراني ډيوه
لـږ څه چي تياره شي دا په سين لاهو کومه زه
دا ډيوه د سين نذر ده ، نه د کاشانې ډيوه
*** *** ***

زه لا د ساحل په ونو غنو کې ولاړه وم
دې خپله ډيوه ها ليونو څپو ته وړاندې کړه
ما ورته کتل چي ډوبيدله په لوی لاس ډيوه
تته رڼاګی يې د سين مستو اوبو لاندي کړه
*** *** ***

بيا مې د تياره ماښام سره سنا کې وليده
بيا يې هم ډيوه تر خپل پلو لاندي نيولې وه
ما وې :- جينۍ ! چيرته ځې او بله ډيوه چاته وړې ؟!
ستا هره رڼا د تا تر بلې رڼا سنکلې وه
*** *** ***

زما خونه تياره ده که پرې زما خونه روښانه کړې
دې راته په شك وکتل ، ويې وې چې :- دا ډيوه
غوارم چې آسمان ته د هديې په توګه وړاندې کړم
دا د نذراني ديوه ده نه زما او ستا ډيوه
*** *** ***

زه لا وم ولاړه هغه ځای او هغې سيمې کې
دې د نذرانې ډيوه د سين په غاړه کيښوده
ارتې فضا کې سوځيده او ورکيده ډيوه
زما خونه يې هغسې تياره توره را پريښوده

نیمه شپه مې بیا ولیده ، بیا مې ورته وویل
څه غوارې چې بیا دې ډیوه خوا پورې نیولې ده ؟!
زما خونه تیاره ده ، دا ډیوه که راته وبخښې
زما په تنهایې گوره تیاره هم غوړیدلې ده
*** *** ***

یوه گړی یې سوچ وواهه ، بیا یې راته وویل :-
عید د « دیوالي » دی ما راوړی ورته دا نذر
غواړم چې د نورو رڼاگانو تول کې گډه شم
نشم دربخښلی د ایمان د ټینگیدا نذر
*** *** ***

زه لا په هغه ځای کې ولاړه وم چې ورکه شوه
هغه ډیوه گی په نورو گڼو څراغونو کې
لکه د باران یوه وړه قطره چې ولویږي
ورکه شي د بحر په وړو ، لویو موجونو کې

## ٦١

چې د لیږد ساعت مې راشي	لږ څه وړاندي له سفره
خدای دي وکړي چې په خوله مې	وي جاري دغه خبره :-
دا هر څه چې مې لیدلي
واړه سنه وو ، واړه غوره

د رڼا په سمندر چې	نیلوفر وو غوړیدلی
پټ خوږوالی مې د هغه	ښایسته ګل دی څکلی
ځکه خوښه یم او وایم	چې د تلو وخت مې راغلی
دا هر څه چې مې څکلی
واړه ښه وو ، واړه غوره

په بې شمیرو صورتونو	مې لیمې دي لوبیدلي
دلته زما سترګې د هغه	چا په مخ دي لګیدلي
چې نه رنګ لري نه کړه وړه	نه یې خوبي دي چا شمیرلي
غواړم ووایم په تلو کي
هر څه ښه وو ، واړه غوره

زما په ټول جسم و بدن کې	خوږ مښود د ده پیدا دی
ځکه هر غړی مې بیل بیل	لکه زړه په رپیدا دی
خو دی نشي لمس کیدلی	دی له هر څه مبرا دی
غواړم دا مې وروستی حرف دی
هـر څـــه ښه وو ، واړه غـوره



د وران شوي معبد بُته ، د وران شوي معبد بُته !
د زاړه ناقوس له زړه دې اوس ستا مینه هیره شوې
عبادت ته د شپې هیڅوك نه دربولي گړیالونه
په مطلق سکوت کې ورکه ! شاخوا دې سپیره شوې
*** *** ***

ستا د چوپې چوپیا کور ته آواره وزمې رادرومي
حال در وړي د هغو گلو چې اوس ته در وړاندې کیږي
لا د هغه لطف هیله چې انکار اوس ترې کیدای شي
د زاړهٔ پرستار زړه، کې دې خوریږي او څلیږي
*** *** ***

ماښامي مهال چې ګډې په تیارو شي رڼاګاني
ستړی شوی ، ستومان شوی ، اسکیرلی خواته درشي
پخوانی ارادتمند دی وزی زړهٔ ترلاس نیولی
لټیدلی، پرزیدلی په تیاره کې تاته درشي
*** *** ***

د وران شوي معبد بُته ، د وران شوي معبد بُته !
په شپو شپو ستا پرستش کړي په تیارو په دربلو کې
خو ته هروخت په دا یو شان جاویدان حیرت کې ډوب یې
ستا ماښام نه سبا کیږي ، رڼا نشته ستا په شپو کې
*** *** ***

د وران شوي معبد بُته ، د وران شوي معبد بُته !
زما تاته خوا شنه کیږي چې اختر او جشن راشي
نه امیل د تا په غاړه د ګلونو اچوي څوک
نه بتۍ درته بلیږي نه عطرونه په تا پاشي
*** *** ***

ښایسته بُتان به جوړ کړي فنکاران چې زړهٔ یې غواړي
او په سین کې د نسیان به یې د تا غوندې ایله کړي
خو یوازې د وران شوي معبد بُت به تل بیخوده
هسې پروت وي او هیڅوک به پرستش د هغه نه کړي
*** *** ***



Series NO:79

On the Occasion of the 10 th Anniversary Of the Writers Union Of Free Afghanistan (WUFA) (1985-1995)

# Gittangli

by:

**Rabendra Nath Tagore**

Translated in To Pashtu by:

**Muhammad Sadiq Paserlai**

The Writers Union Of Free Afghanistan.
1995